بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

موضوع : ادبيات

سرلیک: په شعر کې څنګه خپل ديني او ملي کلتوري ارزښتونه منعکس کول

کوډ: Class P

نېټه: ۲۹/شوال/۱۴۴۶

په شعر کې څنګه خپل ديني او ملي کلتوري ارزښتونه منعکس او پیاوړي کولی شو؟

د اسلامي ادب ګلبڼ درنو ګډونوالو او درنو استادانو !

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته !

هیله من چي روغ او جوړ د ژوند پر ټولو چارو مؤفق او بريالي واوسئ .

درنو !

د ګروپ قدرمن مسؤل پوښتنه مطرح کړې ده : په شعر کې څنګه خپل ديني او ملي کلتوري ارزښتونه منعکس او پیاوړي کولی شو؟

ددينې مناسکو او ارزښتونو د خپراوي لپاره ژمني او التزامي شاعرۍ ته اړتیا ده دا شاعري د نوښت ، ښکلا، غلو، او اغراقه خلاص شاعري غواړي چي دديني اساساتو او پیغامونو او د ديني مناسکو د پوهوني لپاره حقیقت پسندۍ یا ریالیزم ته اړتیا ده ، په دې معني چي په دين کي چي څه موږ وایو هغسې باید تطبیق کړو ، داچي په شاعرانه نړۍ کي  ددې کاره څخه ګټه پورته کوو عمده علت يې دادی چي د شعر په ژبه يې باید په تلخیص سره اوریدونکو ته بیان کړو ، متعال الله د دا ډول شاعري کولو انسانانو لپاره په سورت الشعراء کي فرمايي« إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَذَكَرُوا اللَّهَ كَثِيرًا وَانْتَصَرُوا مِنْ بَعْدِ مَا ظُلِمُوا وَسَيَعْلَمُ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَيَّ مُنْقَلَبٍ يَنْقَلِبُونَ (227) په دې پورته ایت کریمه مبارک کي سره تر دې چي د شاعر کومه کلمه یا صغه نه ده ذکر سوې، خو ددې ایت په مخکني یا مبتدایي ایت کي يې د پیل کلمه په شعراؤ سوې او دا ۲۲۷ ایت مبارک د هغه ایت مبارک هم د د مخه ایت خبر دی او د خبر تر څنګ د قران کریم له لیدلوري څخه د ښه او بد شاعر تفکیک کوونکئ یا بیلوونکئ دئ .

موږ کولای چي د يادي موضوع د ښه پلي کولو لپاره لمړۍ داسي يو شاعر ددې کار لپاره وګورو چي د ديني معلوماتو په تول تللئ ديني معلومات ولري، د شاعرانه سبکونو په پیژندنه کي ماهر او په شعري صنعتي جوړښت کي ښه برلاسی وي تر څو د تیریو او نظریاتو د خپرولو تر څنګ  د شاعرانه اصولو د استعمال او دديني اصولو د استبیان موارد ورته روښانه وي .

په درنښت

علامه حبیبي کتابتون کندهار پوهنتون